

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلېږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر




د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## پنځم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** پنځم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af








# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتــون او هــزاره وو
ورســره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـــواد به تل ځلیږي
په ســینه کې د آســیا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بـلـوڅــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیریـان، نورســتانیـان
هــم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لـمر پر شـنه آسـمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر



## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# لیک لړ





# د کايناتو پيدايښت

ټول کائنات د الله تعالی مخلوقات دي.

ځمکه، آسمانونه، غرونه او سیندونه الله تعالی پيدا کړي دي.

انسانان، پېريان، ملایکې او ژوي د الله تعالی مخلوق دي.

الله تعالی انسانان له یوه پلار آدم او مور حوا (علیهما السلام) څخه پیدا کړي دي.

انسان د الله تعالی غوره مخلوق دی.

ټول مخلوقات د الله تعالی تسبیح وایي.

ټول مخلوقات د الله تعالی د حکم پیرو دي.

الله تعالی ته نیږدې او غوره خلک تقوا لرونکي خلک دي.





## فعالیتونه

۱- ځمکه، لمر او ټول مخلوقات د الله تعالی د حکم پیرو دي، په دې هکله یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲- د کایناتو د پیدایښت په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۳- انسان ته ولې غوره مخلوق ویل کېږي؟

۴- الله جل جلاله آدم علیه السلام له څه شي څخه پیدا کړ؟ پدې هکله له ښوونکي څخه معلومات واخلئ.



## پوښتنې

۱- د انسانانو پلار څوک دی؟

۲- انسانان، آسمانونه، ځمکه او نور مخلوقات چا پیدا کړي دي؟

۳- په انسانانو کې غوره خلک کوم دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اسلام ته درناوی

موږ د اسلام ټول حکمونه او لارښوونې منو او درناوی ورته لرو.

د اسلام مقدساتو ته درناوی د ایمان یوه برخه ده.

د اسلام له مقدساتو څخه ځینې دا دي:

۱- **قران کریم**: قرآن کریم د الله تعالی کلام دی، درناوی یې په دې کې دی چې په لارښوونو یې عمل وکړو.

۲- **کعبه**: د الله تعالی کور دی، مسلمانان د کعبې لوري ته پنځه وخته لمونځ ادا کوي.

۳- **جومات**: جومات د عبادت ځای دی. په جومات کې بې ځایه خبرې کول ناروا دي.

۴- **د حج مناسک**: لکه: عرفات، منی، مزدلفه.

۵- **لمونځ**: موږ هر لمونځ په خپل وخت ادا کوو.

۶- **روژه**: موږ هر کال د رمضان د میاشتې روژه نیسو.

د اسلام حکمونو او مقدساتو ته سپکاوی کول کفر دی.




۱. د ښوونکي په مرسته په وار سره د اسلام د دین خو حکمونه او لارښوونې ووایئ.

۲. اسلام ته درناوی په څه کې دی؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۳. قرآن کریم ته څنګه درناوی پکار دی؟ په دې هکله له ښوونکي څخه معلومات ترلاسه کړئ.




۱- د اسلامي مقدساتو څو بېلګې ووایئ.

۲- د اسلام مقدساتو ته درناوی کول د څه شي برخه ده؟

۳- اسلامي مقدساتو ته توهین او سپکاوی کول څه حکم لري؟




زده کوونکي دې د اسلامي مقدساتو په هکله د کورنۍ د غړو په مرسته لنډه مقاله ولیکي.

# وحي

د الله تعالی له لوري د پیغمبرانو خبرولو ته وحې ویل کېږي.

حضرت جبرئیل علیه السلام به د الله تعالی له لوري پیغمبرانو ته وحې راوړله.

تورات، انجیل، زبور او فرقان (قرآن کریم) ټول آسماني کتابونه دي.

موږ پر ټولو آسماني کتابونو او صحیفو ایمان لرو.

تورات پر موسی علیه السلام، انجیل پر عیسی علیه السلام، زبور پر داوود علیه السلام او قرآن کریم پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی دی.

پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لومړی وحې د حرا په غار کې نازله شوه.

لومړی وحې د علق سورت پنځه لومړني آیتونه دي: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ [العلق: ۱ - ۵]

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له وفات څخه وروسته پر هېچا وحې نه نازلېږي.





## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د آسماني کتابونو په اړه خبرې وکړئ.

۲. په پخوانیو کتابونو ایمان لرل څه معنا لري؟ په دې هکله په خپلو کې خبرې وکړئ.

۳. د لوست په آیتونو کې کومې کلمې دي چې یوه یې په لوستلو امر کوي او بله یې د لیکنې وسیله ده .

۴. تاسو معلومات لرئ چې د حرا په غار کې پر حضرت محمدﷺ وحې څنګه نازله شوه؟ په دې هکله خبرې وکړئ.



## پوښتنې

۱- وحې څه ته ویل کیږي؟

۲- د آسماني کتابونو نومونه واخلئ.

۳- آسماني کتابونه پر کومو پیغمبرانو نازل شوي دي؟

۴- پر حضرت محمدﷺ لومړۍ وحې په کوم ځای کې نازله شوه؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د پیغمبرانو عصمت

له ګناهونو څخه د پیغمبرانو علیهم السلام پاکوالي ته عصمت ویل کیږي.

ټول پیغمبران (علیهم السلام) له ګناهونو معصوم (پاک) دي.

موږ د پیغمبرانو (علیهم السلام) پر عصمت ایمان لرو.

انبیا علیهم السلام د الله تعالی غوره بندګان دي.

لومړی پیغمبر حضرت آدم ﷺ او وروستی پیغمبر حضرت محمد ﷺ دی.

په قرآن کریم کې د ۲۵ پیغمبرانو یادونه شوې ده.

د پیغمبرانو پر عصمت ایمان او باور لرل فرض دي.



## فعالیتونه

بحث پرې وکړئ:

۱- عصمت څه ته ویل کیږي؟

۲- د پیغمبرانو (علیهم السلام) عصمت څه معنی لري؟

۳- ملایکې له گناه پاکې دي. په دې هکله له ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.



## پوښتنې

۱- عصمت څه ته ویل کیږي؟

۲- د لومړي او وروستي پیغمبرانو، نومونه واخلئ.

۳- په قرآن کریم کې د څو پیغمبرانو، نومونه ذکر شوي دي؟

۴- د پیغمبرانو (علیهم السلام) په عصمت ایمان لرل څه حکم لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پیغمبرانو (علیهم السلام) د عصمت په اړه لنډه مقاله ولیکي.

# معجزه

معجزه هغه عمل ته ویل کیږي چې د پیغمبرانو په لاس ترسره شوې وي او نور خلک ور څخه عاجز وي.

معجزه د پیغمبر د ریښتینولۍ دلیل دی.

الله تعالی خپلو پیغمبرانو (علیهم السلام) ته ډول ډول معجزې ورکړې دي.

د موسی علیه السلام یوه معجزه له امسا (لکړې) څخه مار جوړېدل، د عیسی علیه السلام یوه معجزه په دعا سره د ړانده رغېدل او د محمد صلی الله علیه وسلم تر ټولو لویه معجزه قرآن کریم دی.

د پیغمبرانو علیهم السلام پر معجزو ایمان لرل فرض دي.



## فعالیتونه

۱- د پیغمبرانو علیهم السلام د ځینو معجزو یادونه وکړئ.

۲- د محمد ﷺ ځینې مشهورې معجزې بیان کړئ. په دې هکله دې ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته وکړي .

۳- قرآنکریم ته ولې معجزه ویل کیږي؟ په دې هکله دې ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته وکړي.



## پوښتنې

۱- معجزه څه ته وايي؟

۲- آیا په معجزه ایمان لرل فرض دي؟

۳- آیا له پیغمبرانو علیهم السلام پرته نور خلک معجزې لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د معجزې په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي.

# سحر (کوډې)

سحر کول لويه ګناه ده.

سحر د شيطان کار دی.

د کوډو له لارې روزي ګټل حرام دي.

څوک چې هره شپه آيت کرسي تلاوت کوي، له هر ډول زيان او ضرر څخه به په امن وي.

په کوډو سره انسان ته ضرر رسيږي.

کوډګر د هيچا نه خوښيږي.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «اجْتَنِبُوا الْمُوبِقَاتِ الشِّرْكُ بِاللهِ وَالسِّحْرُ»

ژباړه: له هلاکوونکو شيانو څخه چې يو يې شرک او بل يې سحر دی، ځانونه وساتئ.

کوډګر ته ورتګ ناروا دی، رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «مَنْ أَتَى سَاحِرًا أَوْ كَاهِنًا أَوْ عَرَّافًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ ﷺ»

ژباړه: که څوک کوډګر، د غيب ويونکي او فال کتونکي ته ورشي او د هغوی خبرې رښتيا وګڼي، نو په هغه څه چې پر محمد ﷺ نازل شوي کافر شو.



## فعالیتونه

۱- د لوست حدیثونه تکرار کړئ.

۲- د سحر له ضرر څخه د ځان خوندي ساتلو لپاره باید څه وکړو؟ د ښوونکي په مرسته یې ځواب ووایئ.

۳- په شپه کې کوم وخت معوذتین او آیت الکرسي لولئ؟ په دې هکله خبرې وکړئ.



## پوښتنې

۱- آیا سحر لویه ګناه ده؟

۲- سحر د چا کار دی؟

۳- د کوډو له لارې د روزۍ ګټل څه حکم لري؟

۴- د کوم آیت په لوستلو سره موږ د کوډو له ضرر څخه په امن کېږو؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# فال کتل

فال کتل حرام او لويه ګناه ده.

فال کتونکي ته ور تلل، خبرې يې منل او پرې باور کول لويه ګناه ده.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «مَنْ أَتَى سَاحِرًا أَوْ كَاهِنًا أَوْ عَرَّافًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ ﷺ»

ژباړه: که څوک کودګر، غيب ويونکي او فال کتونکي ته ولاړ شي او د هغوی خبرې رښتيا وګڼي، نو په هغه څه چې پر محمد ﷺ نازل شوي کافر شو.

فال کتونکی به له سختو کړاوونو او عذابونو سره مخ کيږي.




۱- د فال کتونکي د عمل په اړه یو له بل سره بحث وکړئ.

۲- که څوک د فال کتلو په نیت چاته ورځي، تاسې باید ورته څه ووایئ، څو له دې کار څخه منعه شي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۳- ستاسو په آند فال کتل څه زیانونه لري؟




۱- د فال کتل څه حکم لري؟

۲- آیا فال کتونکي ته ورتلل روا دي؟

۳- رسول الله ﷺ د فال کتونکي په اړه څه فرمایلي دي؟




که چیرې زده کوونکو کوم فال کتونکی لیدلی وي، د هغه کیسه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# فال نیول

ښه فال نیول روا او بد فال نیول ګناه ده.

د اسلام مبارک دین موږ له بد فال نیولو څخه منع کړي یو.

پیغمبر ﷺ فرمايي: بد فالي نشته او ښه فال نیول غوره کار دی .

**د ښه فال نیولو څو بیلګې:**

- په کوچنیانو باندې د نیکو خلکو نومونه کیښودل.
- ناروغ ته روغ وېل او د روغتیا هیله یې کول.
- په خوب لیدلو باندې ښه فال نیول.

**د بد فال نیولو څو بېلګې:**

- د کینېې سترګې په رپېدلو بد فال نیول.
- د یو شي په اخیستلو بد فال نیول.
- د چا په ټنډه یا پل (راتللو) بد فال نیول.

موږ باید په هر څه ښه فال ونیسو،

او له بد فالۍ څخه ځانونه وساتو.



## فعالیتونه

۱- د ښوونکي په مرسته د ښه فال نیولو او بد فالۍ په اړه یو له بل سره بحث وکړئ.

۲- د ښه فال نیولو څو بېلګې ووایئ.

۳- آیا د چهارشنبې په ورځ د سفر نه کولو بد فال نیول روا دي؟ په دې هکله بحث وکړئ.



## پوښتني

۱- آیا ښه فال نیول روا دي؟

۲- د ښه فال نیولو څو بېلګې ووایئ.

۳- د بد فال نیولو څو بېلګې ووایئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ له غړو سره د ښه فال نیولو او بد فالۍ په اړه خبرې وکړي.

# لوی ګناهونه

لوی ګناهونه هغه ګناهونه دي چې کوونکي ته يې په شريعت کې سزا ټاکل شوې وي او له توبې پرته نه بښل کيږي.
که څوک وړه ګناه تکرار کړي، دا هم په کبيره ګناه بدليږي.
موږ بايد له ټولو وړو او لويو ګناهونو څخه ځان وساتو.

**ځينې لوی ګناهونه په لاندې ډول دي:**

۱- شرک: له الله تعالی سره شريک نيول تر ټولو لويه ګناه ده.

۲- سحر: کوډې کول.

۳- قتل: په ناروا د انسان وژل.

۴- سود خوړل.

۵- د جهاد له مورچل څخه تيښته کول.

۶- تهمت: پر بې ګناه مسلمان د ګناه تور لګول.

۷- د مور او پلار نا فرماني: په روا کارونو کې د مور او پلار له لارښوونو سرغړونه، او خبره يې نه منل لويه ګناه ده.



## فعالیتونه

۱- د څو نورو لویو ګناهونو نومونه بیان کړئ.

۲- له الله ﷻ سره د شریک نیولو څو بېلګې ووایئ.

۳- د مور او پلار د نا فرمانۍ څو بېلګې ووایئ.



## پوښتنې

۱- لوی ګناهونه تعریف کړئ.

۲- وړه ګناه څه وخت په لویه ګناه بدلیږي؟

۳- د څو لویو ګناهونو نومونه واخلئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې ځینې هغه لوی ګناهونه چې په لوست کې نه دي ذکر شوي، په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د جمعې لمونځ



د جمعې لمونځ دوه رکعته دی او په جماعت ادا کېږي.

د جمعې لمونځ د ماسپښین د لمانځه پر ځای ادا کېږي. د جمعې لمونځ پر عاقل، بالغ مقیم مسلمان فرض دی.

د یوې جمعې لمونځ د راتلونکې جمعې تر لمانځه پورې د ګناهونو کفاره ده.

د جمعې د لمانځه لپاره غسل کول او پاکې جامې اغوستل سنت دي.

د جمعې په لمانځه کې امام له دویم اذان وروسته دوې خطبې وایي.

لمونځ کوونکي خطبې ته پوره غوږ نیسي او له خبرو کولو ډډه کوي.

د جمعې د لمانځه پر مهال مسلمانانو ته کار کول ناروا دي.

د جمعې لمونځ پرېښودل ګناه ده، رسول الله ﷺ فرمایي: څوک چې

(پرته له عذره) درې جمعې لمونځونه ترک کړي، په زړه یې تور داغ لګېږي. رواه ابن ماجه




۱- د جمعې د لمانځه په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.
۲- که څوک د خطبې پر مهال خبرې کوي، آیا تاسي ته روا ده چې له خبرو څخه یې منعه کړئ؟
۳- که یو څوک د جمعې لمانځه ته ناوخته راشي، آیا حق لري چې د خلکو پر اوږو تیر شي او لومړي صف ته ځان ورسوي؟




۱- د جمعې لمونځ څه حکم لري؟
۲- د جمعې لمونځ څنګه ادا کیږي؟
۳- د جمعې لمونځ پر چا فرض دی؟
۴- امام د جمعې د لمانځه لپاره څو خطبې وایي؟




زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د جنازې لمونځ (۱)



د جنازې لمونځ کفايي فرض دی.

د جنازې لمونځ ډېر ثواب لري.

د جنازې لمونځ په جماعت ادا کېږي.

د جنازې لمونځ په ولاړه او له رکوع او سجدې پرته ادا کېږي.

د جنازې په لمانځه کې د څلورو تکبيرونو ويل فرض دي.

د جنازې لمونځ د مړي د ولي يا عالم په امامت سره ادا کېږي.

د جنازې لمونځ قضايي نه لري.

## فعالیتونه

۱- د جنازې د لمانځه په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۲- د جنازې د لمانځه او نورو لمونځونو ترمنځ توپیرونه په ګوته کړئ.

۳- که چیرې د جنازې لمونځ تیار وي او تاسې اودس و نه لرئ، آیا تیمم کولای شئ؟ د ښوونکي په مرسته یې ځواب ووایئ.

## پوښتنې

۱- د جنازې لمونځ څه حکم لري؟

۲- آیا د جنازې لمونځ په جماعت سره ادا کیږي؟

۳- د جنازې په لمانځه کې رکوع او سجده شته؟

۴- د جنازې په لمانځه کې څو تکبیرونه ویل کیږي؟

۵- آیا د جنازې د لمانځه تکبیرونه فرض دي؟

## کورنی دنده

زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د جنازې لمونځ ( ۲ )

**د جنازې  د لمانځه طريقه:**

د جنازې لمونځ په څلور ځلې تکبير ويلو سره اداکيږي چې په لاندې ډول بيانيږي:

**لومړی تکبير:**

لمونځ کوونکي په امام پسې (د نورو لمونځونو په څېر) تحريمه تکبير او ورپسې «سُبحانكَ اللهُمَ وَبِحَمدِكَ وَتَبارَكَ اسمُكَ وَتَعالى جَدُّكَ وَلااِلهَ غَيرُكَ» وايي.

**دويم تکبير:**

د امام د دويم ځل تکبير له ويلو سره سم مقتدي هم دويم تکبير وايي ورپسې درود «اَللّهُمّ صَلِّ عَلَي مُحَمّدٍ وَ عَلَي آلِ مُحَمّدٍ كَمَا صَلّيْتَ عَلَي اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلَي آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنّكَ حَمِيْدٌ مّجِيْد» وايي.

**دريم تکبير:**

د درود له ويلو وروسته امام دريم تکبير وايي او ورپسې د جنازې دعا لولي، مقتديان هم همدا دعا لولي.

**څلورم تکبير:**

د څلورم تکبير له ويلو وروسته امام ښي او کيڼ خوا ته سلام ګرځوي، مقتديان هم دواړو خواوو ته سلام ګرځوي.




۱- ځینې زده کوونکي دې د جنازې د لمانځه ادا کول په ټولګي کې تمثیل او ښوونکی دې د دوی تېروتنې اصلاح کړي.

۲- د جنازې لمونځ په کوم ځای کې ادا کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۳- آیا د جنازې د لمانځه لپاره اقامت ویل کیږي؟




۱- د جنازې په لمانځه کې له لومړي تکبیر وروسته څه ویل کیږي؟

۲- له دویم او دریم تکبیر وروسته امام او مقتدیان څه وایي؟

۳- له څلورم تکبیر وروسته څه ویل کیږي؟




زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د جنازې د لمانځه دعاګانې

په بالغ مړي (نارینه او ښځینه) لاندې دعا ویل کیږي:

اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا ، وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا، وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا ، وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا ، اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ ، وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيْمَانِ.

ژباړه: ای الله! زموږ ژوندي، مړي، حاضر، غایب، کوچني، لوی، نر او ښځې وبښه، ای الله! له موږ څخه چې چاته ژوند ورکوې، په اسلام ژوند ورکړه، او له موږ څخه چې له چا روح اخلې، په ایمان سره یې واخله.

**که مړی کوچنی هلک وي، لاندې دعا پرې لوستل کیږي:**

اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا، وَاجْعَلْهُ لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا، وَ اجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَمُشَفَّعًا.

ژباړه: ای الله! دغه مړی (هلک) زموږ د ثواب سبب وګرځوه او زموږ لپاره یې د آخرت پانګه وګرځوه او زموږ لپاره یې شفیع او شفاعت یې قبول وګرځوه.

**که مړی کوچنۍ نجلۍ وي، لاندې دعا پرې لوستل کیږي:**

اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا لَنَا فَرَطًا، وَاجْعَلْهَا لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا، وَاجْعَلْهَا لَنَا شَافِعَةً وَمُشَفَّعَةً.

ژباړه: ای الله! دغه مړی (نجلۍ) زموږ د ثواب سبب وګرځوه، زموږ لپاره یې د آخرت پانګه وګرځوه او زموږ لپاره یې شفیع او شفاعت یې قبول وګرځوه.



## فعالیتونه

۱- آیا د جنازې لمانځه لپاره ټاکلی وخت شته ؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۲- د بالغانو، هلک او نجلۍ د دعاګانو په منځ کې شته توپیر په ګوته کړئ.

۳- د جنازې په لمانځه کې له مړي سربیره نور چاته دعا کیږي؟



## پوښتنې

**الف**: لاندې جملې معنا کړئ:

۱- اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا

۲- اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ

۳- اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا

**ب**: ځوک د بالغ مړي دعا له یاده ویلای شي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د جنازې دعاګانې حفظ کړي او په راتلونکي ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروي.

# د اختر لمونځ



مسلمانان هر کال د خوشحالۍ دوه اخترونه لمانځي.

لومړی کمکی اختر ورپسې لوی اختر.

کمکی اختر د روژې له میاشتې څخه وروسته د شوال میاشتې په لومړۍ ورځ وي.

په کمکي اختر کې مسلمانان غریبانو ته د فطر صدقه ورکوي.

لوی اختر د ذي الحجې میاشتې په لسمه ورځ وي.

په لوی اختر کې مسلمانان قرباني کوي.

مسلمانان په دواړو اخترونو کې عیدگاه ته د لمانځه ادا کولو لپاره ځي.

د دواړو اخترونو لمونځونه واجب دي او په جماعت سره ادا کیږي.

د دواړو اخترونو لمونځ دوه دوه رکعته دی.

د دواړو اخترونو د لمانځه وخت د اختر د ورځې له لمر ختلو نه پیل کیږي او تر زوال پورې وي.

د اختر لمانځه لپاره غسل کول، پاکې جامې اغوستل او عطر وهل سنت دي.



## فعالیتونه

۱- د لوی او کمکي اختر په لومړۍ ورځ باید کوم کارونه وکړو؟

۲- د ښوونکي په مرسته په لوی اختر کې د واجبو تکبیرونو الفاظ ووایئ.

۳- په لوی اختر کې د تکبیرونو ویلو ورځې په ګوته کړئ.

## پوښتنې

۱- کمکی اختر د کومې میاشتې په کومه نېټه دی؟

۲- په لوی اختر کې مسلمانان څه کارونه کوي؟

۳- د اختر لمونځ څو رکعته دی؟

۴- د اختر لمونځ څه حکم لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د لوی اختر په هکله یوه لنډه مقاله ولیکي.

# د اختر د لمانځه طریقه

د دواړو اخترونو لمونځ دوه دوه رکعته دی. د اختر د لمانځه لپاره اذان او اقامت نه ویل کیږي.

د اختر په لمانځه کې شپږ تکبیرونه اضافه ویل کیږي. درې په لومړي رکعت او درې نور یې په دویم رکعت کې ویل کیږي.

**لومړی رکعت:**

امام تحریمه تکبیر په جهر سره او مقتدیان یې په خفیه وایي.

د سبحانک اللهم... له ویلو وروسته امام په جهر سره درې ځلې تکبیر وایي او دواړه لاسونه ورسره د غوږونو نرمیو ته پورته کوي.

مقتدیان ورپسې په خفیه درې ځلې تکبیر وایي او دواړه لاسونه ورسره د غوږونو نرمیو ته پورته کوي.

بیا لاسونه پر نامه کېښودل کیږي، امام په جهر سره قرائت لولي، پاتې د عام لمونځ په څېر ترسره کیږي.

**دویم رکعت:**

امام د قرائت له لوستلو وروسته مخکې له رکوع، درې تکبیرونه په جهر سره وایي او په هر ځل دواړه لاسونه د غوږونو تر نرمیو پورته کوي، مقتدیان هم همداسې کوي.

**یادونه**: د یادو شپږو تکبیرونو په منځ کې لاسونه باید ځوړند ونیول شي.

### فعالیتونه

۱. زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د اختر د لمانځه لومړی رکعت او دویمه ډله دې دویم رکعت تمثیل کړي.

۲. آیا د جنازې او اختر د لمونځونو د تکبیرونو ترمنځ په اداکولو کې څه توپیر شته؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

### پوښتنې

۱- د اختر لمونځ څو رکعته دی؟

۲- د اختر په لمانځه کې څو اضافي تکبیرونه ویل کېږي؟

۳- لومړي درې تکبیرونه څه وخت ویل کېږي.

۴- په دویم رکعت کې څو تکبیرونه او څه وخت ویل کېږي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اختر د لمانځه طریقه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې له یاده ولولي.

# د تلاوت سجده



د تلاوت سجده واجب ده.

د سجدې آیت په لوستلو او یا اورېدلو سره د تلاوت سجده لازمېږي.

**د تلاوت د سجدې د ادا کولو طریقه:**

سجده کوونکی تکبیر وایي او سجدې ته ځي، په سجده کې درې ځلې تسبیحات (سبحان ربي الاَعلی) وایي، ورپسې دویم تکبیر وایي او له سجدې نه را پورته کېږي او په دې سره یې سجده بشپړه شوه.

د تلاوت سجدې لپاره درېدل حتمي نه دي.

له راډیو، ټلویزیون او داسې نورو څخه د سجدې آیت په اورېدلو سجده نه لازمېږي.

په قرآن کریم کې ۱۴ ځایه د تلاوت سجده راغلې ده.

په یو ځای کې د سجدې د یو آیت په څو ځله لوستلو سره یوازې یوه سجده لازمېږي.

په لاندې جدول کې د تلاوت د سجدې آیتونه راوړل شوي چې په لوستلو او یا اورېدلو سره یې د تلاوت سجده لازمېږي:

| شمیره | سورت | د سجدې ایت | شمیره | سورت | د سجدې ایت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | الاعراف | ۲۰۶ | ۸ | النمل | ۲۵ |
| ۲ | الرعد | ۱۵ | ۹ | الم السجده | ۱۵ |
| ۳ | النحل | ۴۹ | ۱۰ | فصلت | ۳۸ |
| ۴ | الاسراء | ۱۰۷ | ۱۱ | ص | ۲۴ |
| ۵ | مریم | ۵۸ | ۱۲ | النجم | ۶۲ |
| ۶ | الحج | ۱۸ | ۱۳ | الانشقاق | ۲۱ |
| ۷ | الفرقان | ۶۰ | ۱۴ | العلق | ۱۹ |



**فعالیتونه**

۱- د تلاوت سجده په ټولګي کې تمثیل کړئ.

۲- د سجدې آیتونه په قرآن کریم کې په ډله ییز ډول په ګوته کړئ.



**پوښتنې**

۱- د تلاوت سجده څه حکم لري؟

۲- په قرآن کریم کې څو د تلاوت سجدې دي؟

۳- د تلاوت سجده کله واجبېږي؟

۴- په څلورو آیتونو کې د تلاوت سجده را وښیئ.



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د سجدې د آیتونو موقعیت، د سپارو له مخې په ګوته کړي.

# د سهوې سجده (۱)

د سهوې سجده واجب ده.

د سهوې سجده په لمانځه کې ترسره کېږي.

د واجبو په ترک او یا د فرضو په ځنډولو سره د سهوې سجده واجبیږي.

**د سهوې د سجدې طریقه:**

۱- په وروستۍ قعده کې له تشهد وروسته سلام گرځول کېږي.

۲- بیا ورپسې دوې سجدې کېږي.

۳- ورپسې تشهد، درود، او دعا ویل کېږي.

۴- په پای کې دواړو خواوو ته سلام گرځول کېږي.



## فعالیتونه

۱. د سهوې د سجدې په هکله یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲. آیا کله مو د سهوې سجده کړې ده؟ د واجب کېدو سبب یې بیان کړئ.



## پوښتنې

۱- د سهوې سجده څه حکم لري ؟

۲- د سهوې سجده څه وخت واجبېږي؟

۳-د سهوې سجده څنګه ادا کیږي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د سهوې سجده (۲)

په لمانځه کې د سهوې سجدې د واجبېدلو څو مثالونه:

۱. د فاتحې سورت پرېښودل.

۲. د فاتحې سورت پسې د بل سورت یا څو ایتونو نه لوستل.

۳. په وترو کې د قنوت دعا پرېښودل.

۴. لومړۍ قعده پرېښودل.

۵. په وروستۍ قعده کې تشهد پرېښودل.

۶. د فرضو وروسته کول، لکه په لومړي رکعت کې کېناستل، او یا دویم رکعت کې له تشهد وروسته دریم رکعت ځنډول.




۱. د سهوې سجدې د واجبېدلو ځینې سببونه بیان کړئ.

۲. که په جماعت کې امام د سهوې سجده ادا کوي، مقتدیان باید څه وکړي ؟




۱- د قیام په حالت کې د سهوې سجده کله واجبېږي؟

۲- د قعدې په حالت کې د سهوې سجده کله واجبېږي؟

۳- آیا په وترو کې د قنوت په پرېښودلو سره سجده لازمېږي؟

۴- آیا د فرضو په تاخیر سره سجده واجبېږي؟




زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د سفر آداب

اسلام مور ته د سفر په وخت، د آدابو لارښوونه کوي، چې ځيني يې په لاندې ډول دي:

۱- له مور او پلار څخه د سفر کولو اجازه اخيستل.

۲- درې ځلې الله اکبر ويل.

۳- د سفر دعا ويل: ﴿سُبْحَانَ الذي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ﴾.

۴- الله ﷻ زيات يادول.

۵- له الله څخه د خير او عافيت سوال کول.

په سفر کې د مسلمان سوال او دعا قبليږي.

**په سفر کې د دعا ځيني بيلګې:**

د سفر آساني غوښتل.

د کورنۍ غړو او خپلوانو ته دعا کول.

د سفر له ستونزو څخه د خلاصون دعا کول.

کورته په خير او عافيت د را ستنيدلو دعا کول.

## فعالیتونه

۱. د سفر د آدابو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۲. آیا د اسلام دین په کومه ټاکلې ورځ کې له سفر کولو څخه منعه کړې ده؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱- د سفر دعا ووایئ.

۲- د سفر کولو لپاره له چا څخه اجازه اخلئ؟

۳- آیا په سفر کې دعا قبلیږي؟

۴- د سفر په وخت کومې غوښتنې په کار دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سفر آداب په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د ژبې ساتنه

مسلمان د خپلې ژبې ساتنه کوي، تل ښې خبرې کوي، رسول الله ﷺ موږ ته داسې لارښوونه کړې ده: «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَسْكُتْ».

ژباړه: که څوک په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري، د خیر خبرې دې کوي او یا دې چپ اوسي.

مسلمان بې ګټې خبرې نه کوي.

موږ چا ته کنځلې او بدې خبرې نه کوو.

څوک په سپک نوم نه یادوو.

په ناروا خبرو انسان دوزخ ته ځي، معاذ رضي الله عنه له پیغمبر ﷺ څخه وپوښتل: آیا موږ په خپلو ویناوو نیول کیږو؟ پیغمبر ﷺ وفرمایل: زیات خلک د خپلو ژبو له کبله دوزخ ته نسکور غورځیږي.

موږ باید له سپکو او ناوړو خبرو څخه ځان وساتو.

زموږ له لاس او ژبې څخه باید چا ته ضرر ونه رسیږي.

## فعالیتونه

۱- د ژبې ساتنې په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۲- کوم وخت چوپتیا غوره ده؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. د لاندې حدیث جملې معنا کړئ:

- «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ»

- «فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَسْكُتْ» .

۲. لاندې خالي ځایونه ډک کړئ:

- زمونږ له لاس او .... باید چاته ضرر ونه رسېږي.

- مسلمان د خپلې ژبې ... کوي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ژبې ساتنې په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# مرسته او همکاري



له خلکو سره په ښو کارونو کې مرسته کول ډېر ثواب لري.

الله جل جلاله په دې هکله مونږ ته داسې لارښوونه کوي:

﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ... ﴾

المائده سورت ۲ ایت.

ژباړه: او په نیکو او د تقوا په کارونو کې یو له بل سره مرسته کوئ او د ګناه او تیرې په چارو کې یو له بل سره مرسته مه کوئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

۱- د الله جل جلاله مرسته له هغه چا سره مل وي چې له نورو خلکو سره مرسته کوي. (رواه مسلم)

۲- څوک چې د ړو خلکو ستونزې حل کړي، الله جل جلاله به یې د دنیا او آخرت ستونزې آسانه کړي. (رواه مسلم)

مور له مور، پلار، ورونو او خويندو سره د کور په چارو کې مرسته کوو.
مور له خپلو ګاونډيانو او ټولګيوالو سره مرسته کوو.
په ناروا کارونو کې له چا سره مرسته کول ګناه ده.

### فعاليتونه

۱- له اړو خلکو سره د مرستې ځينې بېلګې د ښوونکي په مرسته ووايئ.
۲- مور بايد په کومو ځايونو کې د خلکو سره له مرستې کولو ډډه وکړو؟

### پوښتنې

۱- الله جل جلاله له خلکو سر ه د مرستې په هکله څه فرمايلي دي؟
۲- د الله جل جلاله مرسته له چا سره مل وي؟
۳- څوک د مرستې کولو ډېر وړ دی؟
۴- آيا د ګناه په چارو کې مرسته کول روا دي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مرستې په هکله يوه لنډه مقاله وليکي.

# د بې اتفاقۍ زیانونه

د اسلام دین موږ ته په یووالي او اتحاد امر کوي، له اختلاف او بې اتفاقۍ څخه یې منعه کړې یو.

الله ﷻ په قرآن کریم کې فرمایلي دي: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ (د آل عمران سورت ۱۰۳ آیت).

ژباړه: د الله په رسۍ (قرآن کریم) باندې منګولې ولګوئ او بې اتفاقي مه کوئ.

موږ باید له اختلاف او بې اتفاقۍ څخه ځان وژغورو.

**اختلاف او بې اتفاقي ډېر زیانونه لري:**

۱- بې اتفاقي ګناه ده، هر هغه څوک چې د مسلمانانو ترمنځ بې اتفاقي راولي، الله ﷻ ترې ناراضه کیږي.

۲- بې اتفاقي او اختلاف د دښمنۍ لامل کیږي.

۳- په بې اتفاقۍ کې له ژوند څخه برکت اوچتیږي.




۱- د اختلاف او بې اتفاقۍ زیانونه په ګوته کړئ.

۲- د لاندې کلمو ضد ووایئ:

(اتفاق، دښمني، امر، زیان)




الف: لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱- د اسلام دین موږ ته په یوالي او ............... کوي.

۲- بې اتفاقي او اختلاف د .................. لامل کیږي .

۳- په بې اتفاقۍ کې له ژوند څخه ............... اوچتیږي.

ب: په لوست کې د آیت ژباړه ووایئ.




زده کوونکي دې د کورنۍ په مرسته د بې اتفاقۍ د زیانونو په اړه یوه مقاله ولیکي.

# بد ملګری

موږ باید د ملګري په غوره کولو کې زیات فکر وکړو، تر څو له بد شخص سره مخ نه شو.

رسول الله ﷺ د نیک او بد ملګري مثال داسې بیان کړی دی: د نیک شخص ملګرتیا، د عطرو د پلورونکي په څیر ده، له دوو ګټو څخه یې له یوې خامخا برخمن کیږئ:

١- یا به ترینه عطر واخلئ.

٢- او یا خو به د مشکو ښې ورمې بوی کړئ.

د بد شخص ملګرتیا د پښ په څیر ده، د دوو زیانونو څخه یې یو زیان حتما درته رسیږي:

١- بدن او یا جامې به دې وسوځوي.

٢- یا خو به بد بوی او لوګی در ورسیږي. مسند امام احمد.

موږ باید تل له ښو خلکو سره ملګرتیا وکړو.

د نیک شخص په ملګرتیا کې د دنیا او آخرت ډیرې ګټې دي.

موږ باید له بد شخص سره ملګرتیا ونه کړو.

د بد شخص ملګرتیا ډیر زیانونه لري.



## فعالیتونه

۱- د نیک ملګري د ګټو په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.

۲- د بد شخص د ملګرتیا زیانونه په ګوته کړئ.



## پوښتنې

۱- رسول الله ﷺ د نیک ملګري په هکله څه فرمایلي دي؟

۲- د بد شخص ملګرتیا د څه شي په شان ده ؟

۳- د نیک شخص ملګرتیا څه ګټې لري؟

۴- تاسې له چا سره ملګرتیا کول غواړئ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بد شخص د ملګرتیا زیانونه د یوې مقالې په ترڅ ولیکي.

# د دین ستنه

لمونځ د اسلام دویمه بناء او د دین ستنه ده.

په لمانځه سره مسلمان د خپل دین ساتنه کوي.

لمونځ انسان له بدو او ناروا کارونوڅخه ژغوري.

لمونځ د ایمان نښه ده.

په لمانځه د مسلمان او کافر ترمنځ فرق کېږي.

په لمانځه د مسلمان ګناهونه بښل کېږي .

رسول الله ﷺ فرمايي:

که له تاسوڅخه د يوه د کور مخې ته وياله بهيږي او هغه پکې هره ورځ پنځه ځلې لامبي، آيا په بدن به يې څه خيرى پاتې شي؟ صحابه وو وويل: د نوموړي په بدن خيرى نه پاتې کېږي. رسول الله ﷺ وفرمايل: لمونځ هم د دې ويالې په څير دى، هغه څوک چې پنځه وخته لمونځ کوي، ګناهونه يې بښل کېږي. (متفق عليه)

مونږ پنځه وخته لمونځونه په خپل وخت ادا کوو.




۱- د لمانځه د ارزښت او ګټو په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.

۲- د ښوونکي په مرسته دا واضح کړئ چې لمونځ د دین ستنه ده.

۳- په لمانځه سره د مسلمان او کافر تر منځ څنګه فرق کیږي؟




۱- لمونځ د دین ستنه ده؟ دا جمله روښانه کړئ.

۲- رسول الله ﷺ د لمانځه په هکله څه فرمایلي دي؟

۳- لمونځ څه ګټې لري؟ واضح یې کړئ.




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د لمانځه ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي، او په ټولګي کې دې بیان کړي.

# د وخت ارزښت

وخت زموږ ژوند دی او د انسان ارزښتناکه پانګه ده. موږ باید خپل وخت ضایع نه کړو.

رسول الله ﷺ د وخت په هکله فرمایلي دي:

دوه نعمتونه دي چې زیات خلک ترې بې خبره دي: یو روغتیا او بل وخت.

موږ باید له وخت څخه سمه ګټه واخلو.

د دې لپاره چې وخت مو ضایع نشي لاندې ټکو ته پاملرنه کوو:

۱- پنځه وخته لمونځ په خپل وخت کې ادا کوو.

۲- ښوونځي ته په وخت ځو.

۳- خپل درسونه په پوره پاملرنې سره لولو.

۴- کورنۍ دنده په خپل وخت کې لیکو .

۵- لوبې په ټاکلي وخت ترسره کوو.

۶- د نن کار سبا ته نه پرېږدو.



## فعالیتونه

۱. د وخت د ارزښت په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۲. د ښوونکي په مرسته د خپل ورځني ژوندانه مهال ویش ووایئ.



## پوښتني

۱- رسول الله ﷺ د وخت په هکله څه فرمایلي دي؟

۲- د دې لپاره چې وخت موضایع نشي، څه باید وکړو؟

۳- د نن کار باید څه وخت سرته ورسوو؟



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د خپل ورځني ژوند مهال وېش د کورنۍ د غړو په مرسته ولیکي، بیا دې په ټولګي کې ولولي.



# د مسلمان پنځه حقونه

ټول مسلمانان سره خویندې او وروڼه دي، تل یو بل ته درناوی کوي.
مسلمان په خپل مسلمان ورور باندې زیات حقونه لري، رسول الله ﷺ په دې هکله فرمایي: «حَقُّ الْمُسلِمَ عَلَى الْمُسْلِمَ خَمْسٌ: رَدُّ السَّلَام، وعِيَادَةُ المَرِيضِ، واتِّبَاعُ الجَنَائِزِ، وإجابَةُ الدَّعْوَةِ، وتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ» رواه البخاری
د حدیث معنا: مسلمان په مسلمان پنځه حقونه لري: سلام ته یې ځواب ورکول، د ناروغ پوښتنه کول، جنازې پسې یې تلل، بلنه یې منل او له عطسې څخه وروسته د الحمد لله ویلو په ځواب کې ورته یَرْحَمُکَ الله ویل.
موږ د مسلمان سلام ته ځواب وایو، که ناروغه وي پوښتنه یې کوو، په جنازه کې یې ګډون کوو، بلنه یې منو او عطسې نه وروسته ورته یرحمک الله وایو.
له مسلمان سره مرسته کول زموږ دیني دنده ده.
له مسلمان سره مرسته کول ثواب لري.




۱- د مسلمان پنځه حقونه څنګه ادا کیږي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۲- آیا کله مو د کوم ناروغ پوښتنه کړې ده؟

۳- دوه زده کوونکي دې د عطسې دعاوې تمثیل کړي.




۱- مسلمان پر مسلمان څو حقونه لري؟

۲- د تشمیت العاطس معنا ووایئ.

۳- د سلام ځواب څنګه ورکول کیږي؟




زده کوونکي دې د لوست حدیث له معنا سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د سلام فضايل

سلام اچول سنت او ځواب يې واجب دی.

سلام د مسلمان لپاره غوره تحفه ده.

د سلام الفاظ: السلام عليكم ورحمة الله وبركاته.

ژباړه: پر تاسو دې سلامتيا او د الله رحمت وي.

د سلام ځواب: وعليكم السلام ورحمة الله وبركاته.

ژباړه: پر تاسو دې هم سلامتيا او د الله رحمت وي.

سلام د اخلاص ، امن او مينې پيغام دی.

سلام د مسلمانانو په منځ کې مينه او محبت زياتوي.

رسول الله ﷺ فرمايي: ترڅو چې ايمان رانه وړئ، جنت ته نشئ تللئ او مؤمنان نشئ کېدای، ترڅو په خپلو منځو کې مينه او محبت و نلرئ، آيا تاسو ته داسې څه ونه ښايم چې ستاسو تر منځ مينه او محبت پيدا کړي؟

اصحابو وويل: ولې نه.

پيغمبر ﷺ وفرمايل: په خپلو منځو کې سلام اچول زيات کړئ.

(رواه البخاری)

د بشپړ سلام اچوونکي او ځواب ورکوونکي دواړو ته ديرش، ديرش نيکۍ ورکول کيږي.

د سلام په هکله ځينې لارښوونې:

- تيريدونکی به په ولاړو او ناستو خلکو سلام اچوي.
- کشر به مشر ته سلام کوي.
- کور ته د ننوتلو په وخت به سلام اچوي.



## فعاليتونه

۱- د ښوونکي په مرسته د بشپړ سلام اچولو د فضيلت په هکله خبرې وکړئ.

۲- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، يوه ډلې دې بشپړ سلام واچوي، بله دې ورته بشپړ ځواب ووايي.



## پوښتنې

۱- سلام اچول څه حکم لري؟

۲- سلام اچول څه ګټې لري؟

۳- رسول الله ﷺ د سلام په هکله څه فرمايلي دي.

۴- په سلام اچولو سره مسلمان ته څو نيکۍ ورکول کيږي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سلام په هکله د لوست حديث په خپلو کتابچو کې وليکي.

# غیبت

مسلمانان سره خویندې او وروڼه دي، د مسلمان ورور غیبت کول حرام دي.

الله تعالی موږ له غیبت کولو څخه منع کړي یو.

غیبت کول د مړه ورور د غوښو د خوړلو په څېر دي.

د چا په غیاب کې د هغه نیمګړتیاوې بیانولو ته غیبت وېل کیږي.

که چیرې مسلمان هغه عیب و نه لري، دې ته بهتان ویل کیږي.

موږ باید له غیبت او بهتان څخه ډډه وکړو او په مجلسونو کې یې ګډون ونه کړو.

په ناروا کارونو کې له چا سره مرسته کول او غیبت ته غوږ نیول ګناه ده.





## فعالیتونه

۱- د غیبت د زیانونو په هکله په خپلو کې یو له بل څخه پوښتنې وکړئ.

۲- د غیبت او بهتان تر منځ توپیر په ګوته کړئ.



## پوښتنې

۱- غیبت څه ته وايي؟

۲- آیا غیبت روا دی؟

۳- غیبت کول د څه شي په څېر دي؟

۴-آیا د غیبت په مجلسونو کې ناسته روا ده ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# دروغ ویل

مسلمان تل رښتیا وایي، دروغ ویل لویه گناه ده.

دروغ ویل د منافق نښه ده.

پیغمبر ﷺ فرمایي: د منافق درې نښې دي:

۱- په وعده وفا نه کوي.

۲- د بحث او جنگ پر مهال کنځل کوي.

۳- او په خبرو کې دروغ وایي.

دروغجن انسان د هیچا نه خوښیږي.

په دروغجن انسان څوک باور نه کوي.

موږ باید تل رښتیا ووایو او له دروغ ویلو ډډه وکړو.




۱- د ښوونکي په مرسته د دروغو د ناوړه پایلو په اړه یو له بل سره خبرې وکړئ.

۲- د لاندې کلمو ضد په نښه کړئ:

- منافق ، دروغ، وفا کول، جنگ .

( رښتیا، بې وفایي، سوله )

۳- په وعده وفا کول څه گټه لري؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.




۱- دروغ ویل په اسلام کې څه حکم لري؟

۲- دروغ ویل د څه شي نښه ده؟

۳- آیا خلک پر دروغجن انسان باور کوي؟

۴- آیا دروغجن انسان د چا خوښیږي؟




د دروغو څلور زیانونه په څلورو جملو کې ولیکئ.

# بښنه کول

عفوه (بښنه) کول نیک خوی او د مسلمان صفت دی.

مسلمان د بدو په مقابل کې ښه کوي.

خلکو ته بښنه کوونکی بنده د الله ﷻ خوښ دی.

الله ﷻ مونږ ته د بښنې لارښوونه کوي: ﴿وَأَن تَعْفُواْ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى﴾ د البقرة سورت، ۲۳۷ أیت.

ژباړه: او ستاسې بښنه کول تقوا ته نیږدې عمل دی.

په بښنې سره د انسان عزت زیاتیږي، رسول الله ﷺ فرمايي: «وَمَا زَادَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إلاّ عِزًّا» (رواه مسلم)

معنا: او الله ﷻ په عفوې او بښنې سره د انسان عزت زیاتوي.

**د بښنې له ګټو څخه:**

۱- په بښنې د مسلمان زړه له کینې او بغض څخه پاکیږي.

۲- له بښنه کوونکي څخه الله ﷻ راضي کیږي.

۳- په بښنه د انسان عزت لازیاتیږي.

۴- په بښنه ټولنه له دښمنۍ او شر څخه ژغورل کیږي.

مونږ باید د عفوې خصلت خپل کړو.




۱- د ښنې څو مثالونه بیان کړئ.

۲- په ښنې سره څنګه د انسان عزت زیاتیږي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۳- خپلو ټولګیوالو ته د ښنې څو بیلګې ووایئ .




۱- ښنه د چا خصلت دی؟

۲- مسلمان د بدو په مقابل کې څه کوي؟

۳- د ښنې په هکله رسول الله ﷺ څه فرمایلي دي؟

۴- ښنه څه ګټې لري؟ بیان یې کړئ.




زده کوونکي دې د ښنې په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# قناعت

مسلمان تل د الله ﷻ منندوی وي، په خپل ژوند خوښ وي او د لازیات ښه کېدلو هیله یې لري، چې دې ته قناعت وایي.

قناعت د الله ﷻ ستر نعمت او د انسان لویه پانګه ده، په خپل ژوند خوښي د کامیابۍ لاره ده.

رسول الله ﷺ فرمايي: «قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا وَقَنَّعَهُ اللَّهُ بِمَا آتَاهُ». (رواه مسلم)

معنا: پرته له شکه هغه څوک بریالی شو چې اسلام یې راوړ، روزي یې د اړتیاوو بسنه وکړي او الله تعالی په ورکړل شویو نعمتونو ورته قناعت ورکړی وي.

**د قناعت ګټې:**

۱- الله ﷻ له مسلمان څخه راضي کېږي.

۲- انسان له بې ځایه حرص څخه ژغورل کېږي.

۳- الله ﷻ د مسلمان په ژوند کې برکت اچوي.

۴- انسان له نا امیدۍ، کینې او حسد څخه خلاصیږي.

۵- انسان زیار باسي چې ژوند یې لا ښه شي.

## فعالیتونه

۱- د قناعت گټې، په نوبت سره بیان کړئ.

۲- د قناعت ضد څه کیدای شي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۳- آیا په بې ځایه حرص کولو ژوند ښه کیږي؟

## پوښتنې

۱- قناعت څه ته وایي؟

۲- رسول الله ﷺ د قناعت په هکله څه فرمایلي دي؟

۳- قناعت څه ګټه لري؟

۴.- آیا په قناعت لرلو سره د انسان کینه له منځه ځي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قناعت ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د صبر فضایل

د اسلام دین مونږ ته د صبر او حوصلې لارښوونه کوي.

صبر او حوصله د مسلمان صفت دی.

رسول الله ﷺ فرمایي: د مؤمن ژوند د تعجب وړ دی، هر حالت یې د ده لپاره خیر دی چې دا یوازې د مؤمن ځانګړتیا ده:

که چیرې خوشحالي ورته ورسیږي، شکر پرې وباسي او دا ورته خیر دی او که چیرې تکلیف یا ضرر ورته پیښ شي، صبر پرې کوي، دا هم ورته خیردی. (صحیح مسلم)

**د صبر ډولونه:**

۱- صبر په اطاعت: یعنې د الله ﷻ امرونه پر ځای کول، لکه: پنځه وخته لمونځ کول، روژه نیول او داسې نور.

۲- صبر له ګناه څخه: له هر هغه ځان ساتل چې په دین کې ناروا دي، لکه: غلا، ظلم او غیبت کول.

۳- صبر په تکلیف او غم کې: یعنې د ستونزو او غم پر وخت صبر او حوصله کول.

**د صبر له ګټو څخه:**

۱- الله ﷻ له مسلمان څخه راضي کیږي.

۲- په صبر سره انسان غښتلی کیږي او له ناهیلۍ څخه نجات مومي.

۳. په صبر لرلو سره انسان خپلې موخې ته رسيږي.

۴. په صبر لرلو سره د ژوند ستونزې حل کيږي.



## فعاليتونه

۱- له ګناه څخه صبر څنګه کيږي؟ په دې هکله څو مثالونه ووايئ.

۲- په خپل ژوندانه کې د صبر څو عملي ګټې ووايئ.

۳- د زده کړې پر مهال څنګه صبر کيدای شي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.



## پوښتنې

۱- اسلام موږ ته د څه لارښوونه کوي؟

۲- د صبر په هکله رسول الله ﷺ څه فرمايلي دي؟

۳- صبر په څو ډوله دی؟

۴- د صبر څو ګټې ووايئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د صبر څلور ګټې په خپلو کتابچو کې وليکي.